


# هیلۍ

(د ځوانو شاعرانو ګډ شعري جونګ)

راټولوونکی

محمد اسمعیل یون

۱۳۸۷ ل

# هیلۍ

(د ځوانو شاعرانو ګډ شعري جونګ)

راټولوونکی

محمد اسمعیل یون

# بسم الله الرحمن الرحیم

## کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتـــاب نـــوم: | **هیلې** |
| راټــولــوونـکی: | محمد اسمعیل یون |
| خــپــرنــدوی: | یون کلتوري یون |
| چـــاپـشمـــېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| لـــومـــړی چاپ: | ۱۳۶۷ل کال |
| دویـــم چـــاپ: | ۱۳۸۷ل کال |
| دراټــولــوونکي | |
| پـرلـه پسې نومره: | (۱) |
| د خــپــرنــدوی | |
| پـرلـه پسې نومره: | (۱) |
| کـــمـــپوزر: | ضیاالرحمن ضیا |

# نیولیک


| ګڼه | سرلیک | مخ |
| --- | --- | --- |
| ۱ | د ځوانو شاعرانو دا «هیلې» | ۱ |
| ۲ | یادښت | ۲ |
| ۳ | دشعر دا تنکي ګلان | ۷ |
| ۴ | ددې جونګ د شاعرانو لنډه پېژندګلوي | ۱۲ |
| ۵ | ملت | ۱۴ |
| ۶ | غزل | ۱۶ |
| ۷ | د خیال په څنډو | ۱۷ |
| ۸ | د هوس په شونډو | ۱۸ |
| ۹ | غزل | ۱۹ |
| ۱۰ | امن او جنګ | ۲۰ |
| ۱۱ | د وطن مینه | ۲۲ |
| ۱۲ | بې ننګ زړګي ته | ۲۳ |
| ۱۳ | غزل | ۲۵ |
| ۱۴ | د حیا په اور | ۲۶ |
| ۱۵ | د مینې دنیاګۍ | ۲۸ |
| ۱۶ | د خزان غېږ | ۳۰ |
| ۱۷ | کله نا کله | ۳۲ |
| ۱۸ | د محبت ګلونه | ۳۳ |
| ۱۹ | تپوس | ۳۴ |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۰ | د سولې لمر ته | ۳۵ |
| ۲۱ | غزل | ۳۷ |
| ۲۲ | کسات | ۳۹ |
| ۲۳ | د اور څپې | ۴۱ |
| ۲۴ | د لېمو په لار | ۴۲ |
| ۲۵ | دحسرت شغلې | ۴۳ |
| ۲۶ | غزل | ۴۴ |
| ۲۷ | د زړه درد | ۴۵ |
| ۲۸ | غزل | ۴۷ |
| ۲۹ | د زړه خبرې | ۴۸ |
| ۳۰ | غزل | ۴۹ |
| ۳۱ | غزل | ۵۰ |
| ۳۲ | غزل | ۵۲ |
| ۳۳ | غزل | ۵۳ |
| ۳۴ | غزل | ۵۴ |
| ۳۵ | غزل | ۵۵ |
| ۳۶ | پښتني انداز | ۵۷ |
| ۳۷ | غزل | ۵۸ |
| ۳۸ | غزل | ۵۹ |
| ۳۹ | پښتنه مینه | ۶۰ |
| ۴۰ | غزل | ۶۱ |
| ۴۱ | دا کور یوازې ستا دی | ۶۳ |
| ۴۲ | غزل | ۶۵ |

| | | |
|---|---|---|
| ۴۳ | د وطن هجر | ۶۶ |
| ۴۴ | غزل | ۶۷ |
| ۴۵ | غزل | ۶۸ |
| ۴۶ | غزل | ۶۹ |
| ۴۷ | غزل | ۷۰ |
| ۴۸ | شاهين نظر | ۷۱ |
| ۴۹ | غزل | ۷۲ |
| ۵۰ | پسرلی شو | ۷۳ |
| ۵۱ | غزل | ۷۴ |
| ۵۲ | د اوښکو پیغام | ۷۵ |
| ۵۳ | د محبت کلی | ۷۷ |
| ۵۴ | د ارمان غېږه | ۷۸ |
| ۵۵ | غزل | ۸۰ |
| ۵۶ | غزل | ۸۱ |
| ۵۷ | سوې سواره | ۸۲ |
| ۵۸ | غزل | ۸۴ |
| ۵۹ | غزل | ۸۵ |
| ۶۰ | د ښایست اثر | ۸۷ |
| ۶۱ | توده مينه | ۸۸ |
| ۶۲ | شهيد ته | ۸۹ |
| ۶۳ | د وينو ويالې | ۹۰ |
| ۶۴ | امتحان | ۹۱ |
| ۶۵ | دکاڼو باران | ۹۲ |

| | | |
|---|---|---|
| ۶۶ | غزل | ۹۳ |
| ۶۷ | کاږه کاته | ۹۴ |
| ۶۸ | د هيلو کاروان | ۹۶ |
| ۶۹ | دهيلو غوټۍ | ۹۸ |
| ۷۰ | ای هېواده | ۱۰۰ |
| ۷۱ | پښتني حيا | ۱۰۲ |
| ۷۲ | نرګس ليمه | ۱۰۳ |
| ۷۳ | کتل | ۱۰۴ |
| ۷۴ | آه | ۱۰۵ |
| ۷۵ | ازمون | ۱۰۶ |
| ۷۶ | د ماضي خندا | ۱۰۷ |
| ۷۷ | د اوښکو جنازې | ۱۰۸ |
| ۷۸ | متکور | ۱۱۰ |
| ۷۹ | د محمد اسمعيل يون لنډه پېژندنه | ۱۱۱ |

د دويم چاپ سریزه:

## د ځوانو شاعرانو دا ((هیلې))

د شعرونو دا جونګ چې ستاسو په لاس کې دی، دا د کوزې پښتونخوا یا لر افغانستان او بر افغانستان د ځوانو شاعرانو د شعرونو د بېلګو یوه ټولګه ده. دا ټولګه ما له نن څخه نږدې (۲۱) کاله دمخه (پر ۱۳۲۲ ل کال) راټوله کړې وه او پر ۱۳۲۷ ل کال، د هغه وخت د ځوانانو سازمان له خوا د زرګونو ټوکو په شمېر چاپ شوې ده. هغه مهال زه د خوشال خان لېسې د دولسم ټولګي زده کوونکی وم او تخلص مې لاهم نه و غوره کړی.




د تعلیم او تحصیل په بهیر کې چې د چا د شعرونو، لیکنو او

یا بل کوم ځانګړی اثر چاپ شي، نو دومره کیف لري، چې سړی یې بل مثال نه شي وړاندې کولای، په تېره بیا په هغسې حالاتو کې چې د چاپ وسایل هم په نشت حساب و او اقتصادي تنګسیا هم تر حده زیاته وه. زه لاد خوشال خان لېسې د یوولسم ټولګي زده کوونکی وم، چې د دې لېسې د ادبي انجمن د مشر په توګه وټاکل شوم، د دوو کلونو په بهیر کې مو په لسګونو غونډې او مشاعرې جوړې کړې او په نورو ناشمېره ادبي غونډو، مشاعرو او سیمینارونو کې مو ګډون وکړ، دا مهال په خوشال خان لېسه کې د ځوانو شاعرانو داسې یوه څپه راوټوکېدله، چې د دې ښوونځي تر شمېره وتو زده کوونکو شاعری او لیکوالۍ ته مخه کړه. هغه وخت د اوس په شان د شعرونو او لیکنو چاپ، عادي خبره نه وه، کتاب خو د ډېرو مطرحو او خال خال شاعرانو چاپېده، شخصي چاپخونې نه وې او په خپلو پیسو د کتابونو چاپ هم ډېر دود نه و، یوازې دولت د لیکوالو اثار چاپول او یوازې دولت ددې وس درلود، نو دا مهال د ځوانو شاعرانو د شعرونو او لیکنو چاپ، د هغوی په ادبي ژوندانه کې ډېر مثبت تاثیر درلود. د همدې دولسم ټولګي په بهیر کې ما یوه هڅه پیل کړه، د هغو ځوانو شاعرانو، چې دا مهال ما سره په لېسه او ادبي انجمن کې و، د هغو د کلام بېلګې مې غونډې کړې، تر لېسې بهر د ځینو نورو ځوانو شاعرانو؛ ښځینه وو

او نارينه وو، د كلام بېلګې مې انتخاب او همدارنګه په کوزه پښتونخوا کې د يو شمېر ځوانو شاعرانو له چاپي او ناچاپه شعري ټولګو څخه مې هم ځينې بېلګې غوره کړې او په دې ډول مې د هغه وخت د ځوانو شاعرانو د شعرونو يو غورچاڼ يا منتخب ورڅخه جوړ کړ. په دې مجموعه کې په ټوليز ډول د هغه مهال د (۴۰) تنو ځوانو شاعرانو د کلام (۷۴) بېلګې خوندي شوي، دا هغه شاعران دي، چې تر دې مهاله د يوه هم په مستقل ډول د شعرونو ټولګه نه وه چاپ شوې، خو په ځينو اخبارونو او ګډو شعري مجموعو کې يې يو يا څو شعرونه خپاره شوي وو، ځينې په کې داسې شاعران هم شته چې د لومړي ځل لپاره يې په همدې شعري جونګ کې شعرونه خوندي شوي دي. په يوه لښتليک کې د شاعرانو د زېږېدو ځای او نېټه هم کښل شوي، چې له يو درې څلورو تنو پرته د نورو اکثره، د زېږېدو پر کال مطمين يم، خو ځينو يې چې وروسته بيا په نورو ټولګو کې خپل ځانونه معرفي کړي، د زېږېدو کال يې همغه نه دی ښودلی، چې هغه مهال يې ماته راکړی و. ددې شعري جونګ تر چاپ وروسته د شلو کلونو په بهير کې په دې مجموعه کې ځينې راغلي شاعران اوس د ګڼو چاپي او ناچاپي اثارو خاوندان او په ټولنه کې مطـــــــرح ليکوال دي، خو ځينو يې له دې فاني نړۍ نه کــــډه کړې او ځينې نور هم له خپل هېواده مهـــــاجرت ته اړ شوي دي. کله

چې مې پر ۱۳۶۶ ل کال کې دا شعري جونګ ترتيب کړ، نو بيا يې د چاپ په لټه کې شوم، هغه وخت په خوشال خان لېسه کې د زده کړې ترڅنګ د ((درفش جوانان)) اوونيزې قلمي همکار هم وم، له هغې لارې مې د هغه وخت ځوانانو سازمان ته مراجعه او د دې کتاب د چاپ هيله مې ترې وکړه، هغوی تر دې دمخه ځينې ادبي کتابونه چاپ کړي وو، خو اکثره يې په دري ژبه وو، دې کار ماته ښه پلمه په لاس راکړه، نو په ټينګار سره مې د خپلې ژبې د استحقاق له مخې ددې مجموعې چاپ پرې ومانه، هغه وخت د چاپ دا ډول عصري وسايل نه وو، هغوی دا جونګ په لاسي ټايپ، ټايپ کړ او بيا يې په افيسټ ډول، په سپين کاغذ کې چاپ کړ، د کتاب کاغذ ښه و، خو څرنګه چې متن ټايپ شوی و، نو چندان ښه نه برېښېده، خو بيا هم د هغه وخت د امکاناتو په حدودو کې يې چاپ ښه او مناسب و.

کتـــــاب مې د ۱۳۶۶ ل کال په وروستيو کې هغوی ته ورکړی و او د ۱۳۶۷ ل کال په لومړيو کې، چې زه د کابل پوهنتون محصل وم، چاپ شو او په زرګونو ټوکه مې بيا ځوانو ليکوالو ته په وړيا ډول ووېشه. دا دی ددې اثر تر لومړي چاپ پوره شل کاله تېرېږي، هغه وخت زه د دولسم ټولګي زده کوونکی وم او دا دی اوس چې د ۱۳۸۷ ل کال وروستۍ مياشتې دي، زه د کابل پوهنتون استاد او د پوهندوی علمي

پوره ته رسېدلی یم، دا کتاب یو ځل بیا چاپوم او د هغه وخت خاطرې او ارزښتونه بیا راتازه کوم. د تېرو شلو کلونو فرهنګي زیار او کار مې داسې په یاد دی لکه دا تېره ورځ چې تېر شوي وي. فرهنګي کار په ډېره مینه، صداقت او احساس ترسره کېږي، کومه مینه چې شل کاله دمخه له ماسره د خپل فرهنګ د غوړېدلو لپاره وه، هغه اوس هم راسره ملګرې ده او هر ځای ته راسره بدرګه روانه ده. که له فرهنګ، خپلې ژبې او خپل ملت سره د مینې زور نه وای، نو دا شلکلن فرهنګي مزل مې نه شو وهلای.

اوس چې زه د خپل تېرو فرهنګي کارونو پر بیا سمون او راټولېدنګ بوخت یم، نو د ځوانو شاعرانو دا اثر د خپل دې پیل کړي کار د لومړي اثر او هیلې په توګه یو ځل بیا خپروم، ما خپل فرهنګي کار پر «هیلې» پیل کړی او له هیلو سره به پایم، له نورو درنو لیکوالو څخه هم هیله لرم، چې تل هیله من اوسي او خپل زړه ته د نهیلۍ بلا پرېنږدي، په همدې هیله دا «هیلې» ستاسو په مخکې ږدم او د لوستلو بلنه یې درکوم.

په درناوي

پوهندوی محمد اسمعیل یون

د ۱۳۸۷ل کال د سلواغې ۳مه

کابل- افغانستان

# یادښت

اوس زموږ د هېواد د ادبیاتو په نړۍ کې د ادب ځواني غوټې غوړېږي او د شعر چینې خوټېږي، چې دا کار زموږ له هیلو ډکو زړونو ته خوښي وربښي، د «هیلې» په نوم د شعرونو دغه جونګ چې ستاسو په لاس کې دی، د ګلبڼ د تنکیو سرو غونچو د خندا یوه څپه ده، چې په غوړېدو به یې زموږ امیدونه تازه او تنده به مو پرې ماته شي.

د نوي او زاړه ادب ترمنځه د نږدېوالي غښه وسیله او رابطه هم داده، چې د ځوانو شاعرانو تازه اشعار د چاپ ډګر ته راووځي، په دې لړ کې غواړو، چې د قبایلي ځلمیانو د اشعارو خوږه مجموعه، چې د ښاغلي اسمعیل له خوا راټوله شوې ده او د کوزې پښتونخوا ځوان شاعران یې هم له یاده نه دي ایستلي، د قدر وړ بولو.

د ا. ځ. د. س. مرکزي کمېټه به په راتلونکي کې هم د لرې او برې پښتونخوا، د ځوانو شاعرانو او لیکوالو د استعدادونو د غوړېدلو په هیله، د داسې شان مجموعو په خپرولو کې خپل هاند او هڅه ونه سپموي.

په دې هیله چې زموږ د ادبیاتو په ګلبڼ کې د ځوانو شاعرانو ګرمه وینه وچلېږي، خپلې خبرې پای ته رسوم.

په درنښت

د ا. ځ. د. س. مرکزي کمېټه

# د شعر دا تنکي ګلان

د شعرونو دا مجموعه، زموږ د ګران هېواد افغانستان او پښتونخوا د يو شمېر ځوانو او تنکيو شاعرانو او ناظمانو شعرونه او نظمونه په غېږ کې نيسي. بې له شکه، دا اثر به د برو او لرو ولسونو له پيوستون سره مرسته وکړي او د ځوانو شاعرانو په تشويق کې به بې اغېزې نه وي.

د دې مجموعې موضوعات، عشقي، ملي، اجتماعي او انتقادي دي، خو د فورم له پلوه زياتره په غزل کې راځي، ازاد شعرونه او نظمونه هم لري.

په دغه مجموعه کې هڅه شوې ده، چې په لومړي ګام کې د هغو کسانو شعرونه او نظمونه راټول شي، چې تراوسه پورې يې زموږ په مطبوعاتو کې د چاپ او نشر لږ چانس موندلی دی. زموږ په عقيده، مطبوعات د ځوانانو د استعدادونو د روزنې او ودې ډېره ښه وسيله ده، مطبوعاتي نړۍ د زده کړې ځای او د ځوانو هيلو د غوړېدو ډېره غوره سرچينه ده. په دغه پراخه جهان کې شاعران او اديبان نه يوازې د ادبي ماليارانو په توګه د ګلو کر کوي، بلکې د دغې زړه راښکونکې دنيا له څپاند سيند څخه يو يو څاڅکی هم راپورته کوي او خپله تنده پرې ماتوي.

ادبي نقادان دنده لري، چې د ځوانو شاعرانو پر شعرونو د دې پرنسیپ له مخې چې څنګه یې باید ولیکي!؟ ښوونیزه کره کتنه وکړي. د لوناچارسکي د وینا له مخې: «نقادان د لیکوالو او شاعرانو استادان دي، خو دوی حق نه لري، چې ځانونه استادان وبولي، ځکه چې که له ادبي نقادانو څخه په نقد کې تېروتنه وشي، نو همدغه شاعران تر بل هر چا څخه زیات د هغوی تېروتنې ورسمولای شي!» زه دغو شاعرانو ته په عمومي ډول سپارښتنه کوم، چې د هېواد د مجربو او نوښتګرو شاعرانو شعرونه په ژوره توګه ولولي او د نړۍ د هغو شاعرانو اثار هم مطالعه کړي، چې په پښتو او دري ژبو ژباړل شوي دي. زموږ د ګران هېواد ځوان شاعران او لیکوال باید یوه ګړۍ هم د کرغېړنو افکارو په چاپېریال کې ونه اوسي، ځکه هغوی یې په پړاوونو شاته پرېږدي، د نمونې په توګه: که کوم شاعر خپله ټوله شاعري یوازې او یوازې د یوې نجلۍ د ښکلا لپاره وقف کړي، نو هغه به نه یوازې د ځورېدلو پرګنو پر وړاندې خپل تاریخي رسالت لکه څنګه چې ښایي هماغسې سرته نه وي رسولای، بلکې په جرئت سره دا ویلای شو، چې د تکامل له بهیر څخه به په پړاوونو ببرته پاتې وي او باید د خپلې شاعرۍ پر سرنوشت باندې له سره غور وکړي او د وخت او زمان له هیلو او غوښتنو سره سم پیوند ورکړي. زموږ عقیده دا ده، چې داسې شاعران دې د

خوبانو ښکلا وستايي، خو خپل لوڅ او بربنډ ولسونه دې هم نه هېروي. په دې ارتباط کارل مارکس څه ښه وايي: «که چېرې څوک يوازې د ځان لپاره کار وکړي، ښايي لوړ شاعر، د پوهې څښتن او نامتو شخص شي، مګر هېڅکله نه شي کولای چې بشپړ شخص او په رښتيني توګه ستر وي!».

کارل مارکس: «په استثمار ګره ټولنه کې ترقي له يوه کرکجن اورپالونکي رب النوع سره تشبه کوله، چې نه يې غوښتل خپل نوشادر د مړو له کوپړيو پرته په بل شي کې وڅښي!» تاريخ د دې خبرې شاهد دی، چې کلونه کلونه او حتی په پېړيو يو شمېر شاعران او ليکوال د پاچايانو، سپاه سالارانو او شاهانه دربارونو په خدمت کې وو، خو د خلکو د پرګنو نه ايلېدونکې ارادې ته يې په خپلو ايجاداتو کې ځای ور نه کړ او له دې نه بې خبره وو، چې د ولس د ځپل شويو ارادو او هيلو انعکاس هغه تلپاتې پيغام دی، چې د خلکو شاعر يې د تل لپاره له ځانه سره لري. دوی په دې هم نه پوهېدل او که پوهېدل نه يې غوښتل چې رښتينی قدرت په وسلو او د شاهانو په تاجونو کې نه، بلکې د بېوزلو پرګنو په لوړ او اوچت مقام کې پروت دی.

د ژمنو شاعرانو افکار که د زمانې په کړلېچونو کې په تيره هم واچول شي، نو د شنه کېدلو او غوړېدلو امکانات يې ډېر او د تل لپاره به د وخت او زمان په سرو منګولو کې د سرو

جنډو په څېر وربېږي او وځلېږي، ځکه تاريخ پر هغوی باندې د صحت مهر لګولی دی او تر پايه پورې به د مهربانۍ مور په شان په خپله پسته، خو لـه حوادثو څخه په ډکه غېږ کې ځای ورکړي. هېڅ ډول بې بنسټه تورونه به د هغوی پر ورين تندي باندې د مړو ايرو ګرد هم ونه شي پاشلی او دا ځکه چې دا د خلکو مال دی او د هغوی پرون، نن او سبا پورې تړلی دی، نو ځکه يې لـه لاسه هم نه ورکوي او د بلې ډيوې غوندې يې وړانګې لاپسې خورېږي، تر پولو او سرحدونو څخه اوړي او د ځمکې د کُرې د هر ګوټ تيارې رڼا کوي. دا د شعري نړۍ يو اړخ دی.

ددې په مقابل کې زموږ د معاصر شعر او ادب په ځوانه ادبي پروسه کې منفي تمايلاتو او بېګانه پديدو، نه يوازې زموږ نوی او مترقي شعر او ادب خوړ او ښکلی نه کړ، بلکې خپل ناولی سيوری يې هم پرې وغوړځاوه.

د هر ملت د مترقي ادبياتو په بهير کې منفي تمايلات ددې سبب کېږي، چې د هغې دورې ادبيات په موقتي توګه په ولس کې تجريد کړي او د هماغې ادبي دورې جريان د بې لارۍ لور ته سوق کړي. د دې لپاره چې زموږ ځوان شاعران او اديبان د بېګانه پديدو ښکار نه شي او د هغوی لـه پيروۍ څخه ځان وژغوري، نو بايد د سبا په هيله د خپل شعر په بڼ کې بې مېوې نيالـــګی کېننوي او بايد د هغه چـــا په شان هم نه

شي چې د اوبو په ډکه وياله کې د تېرېدلو لپاره يوازې ځو لوتې وغورځوي او يو ځلې پرې تېر شي، خو د دويم ځل لپاره نه دده په درد خوري او نه هم د نورو لارويانو!

په هر حال مهمه خبره داده چې د ((درفش جوانان)) نشراتي موسسې تقريباً د خپل (۸) کلن نشراتي کار په ترڅ کې د لومړي ځل لپاره د يوې ځانګړې پښتو مجموعې د خپرېدو لپاره تکل کړی دی، نو ځکه يې دغه کار د ستاينې وړ بولو.

مونږ چمتو يو چې په راتلونکې کې ډېر ارزښتناک اثار د درفش جوانان د نشراتي موسسې د مسوولينو په واک کې ورکړو، څو يې دغه موسسه په خپل وخت کې د مينه والو خدمت ته وړاندې کړي. همدا راز د دې مجموعې د ترتيبوونکي ځوان شاعر اسمعيل زيار ګټهور بولو او د نېکو هڅو پلوی يې کوو.

په مينه

**محمد نبي صلاحي**

## د هغو شاعرانو لنډه پېژندګلوي چې په دې شعري جونګ کې شامل دي:

| ګڼه | نوم | د زېږېدو کال | د زېږېدو ځای |
|---|---|---|---|
| ۱ | عبدالمالک بېکسیار | ۱۳۴۰ل | میدان وردګ |
| ۲ | الله داد روښان | ۱۳۴۴ل | ژوب |
| ۳ | کریمه لمبه | ۱۳۳۹ل | کونړ |
| ۴ | اختر خوشال | ۱۳۴۵ل | جنوبي پښتونخوا کویټه |
| ۵ | صفیه صدیقي | ۱۳۴۲ل | ننګرهار |
| ۶ | محمد ریاض | ۱۳۴۳ل | پېښور |
| ۷ | ممتاز | ۱۳۴۵ل | کونړ |
| ۸ | نادیه مینه | ۱۳۵۱ل | ننګرهار |
| ۹ | فیروزشاه | ۱۳۴۵ل | سوات |
| ۱۰ | صدیق الله بدر | ۱۳۵۲ل | ننګرهار |
| ۱۱ | محب الله خپلواک | ۱۳۴۹ل | کونړ |
| ۱۲ | زهره څپه | ۱۳۵۱ل | میدان وردګ |
| ۱۳ | محمد یوسف قدردان | ۱۳۴۳ل | جنوبي پښتونخوا پښین |
| ۱۴ | جمشید | ۱۳۵۰ل | کونړ |
| ۱۵ | علم | ۱۳۴۳ل | غزني |
| ۱۶ | پلوشه ساپۍ | ۱۳۴۳ل | لغمان |
| ۱۷ | تېمورشاه بهار | ۱۳۴۳ل | جنوبي پښتونخوا لورلایي |
| ۱۸ | عطامحمد | ۱۳۵۰ل | کونړ |
| ۱۹ | عبدالله پانوس | ۱۳۴۹ل | کونړ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۲۰ | شفیق احمد بدر | ۱۳۴۹ | جنوبي پښتونخوا-لورلايي |
| ۲۱ | ساجده عبدالله | ۱۳۴۹ل | لوګر |
| ۲۲ | حبیب الرحمن قربانخېل | ۱۳۴۸ل | غزني |
| ۲۳ | عبدالغني مبارز | ۱۳۴۲ل | جنوبي پښتونخوا-لورلايي |
| ۲۴ | محمدظفر تنہی | ۱۳۴۹ل | خوست |
| ۲۵ | ملوک هوس | ۱۳۴۵ل | باجوړ |
| ۲۶ | فیض محمد شهزاد | ۱۳۴۲ل | پښین |
| ۲۷ | ظاهرشاه ظاهر | ۱۳۴۹ل | کونړ |
| ۲۸ | احمد تکل | ۱۳۴۳ل | وردګ |
| ۲۹ | فریده هوډ | ۱۳۴۰ل | ننګرهار |
| ۳۰ | سرزمین اسرار | ۱۳۴۳ل | سوات |
| ۳۱ | ملالۍ ساپۍ | ۱۳۴۵ل | کاپیسا |
| ۳۲ | فیض محمد تصور | ۱۳۴۵ل | کونړ |
| ۳۳ | عطیه افق | ۱۳۴۴ل | کندهار |
| ۳۴ | امان الله غلجی | ۱۳۴۵ل | ګومل |
| ۳۵ | عالم زېب | ۱۳۴۶ل | سوات |
| ۳۶ | لعل پاچا | ۱۳۵۰ل | ننګرهار |
| ۳۷ | محمدقاسم هیله من | ۱۳۴۰ل | ننګرهار |
| ۳۸ | لاهور ټکر | ۱۳۴۰ل | خوست |
| ۳۹ | شفیقه رڼا | ۱۳۴۰ل | کندهار |
| ۴۰ | اسمعیل | ۱۳۴۶ل | لغمان |

# ملت

ځنګـه پـه سـوچو یـې کـړم نـاز دې لـه خنـدا سـره
جـوړ لـه لـوړو غـرو یې کړم ناز دې له خندا سره

نـن چې د اغیـار پلـو، سترګو کې موسکی شـولې
دود د سـپېلنو یـې کـړم نـاز دې لـه خنـدا سـره

ځیرې ګرېوان، وینې مې خپـل، پردی، اشنا او یـار
شـمار پـه لپونـو یـې کـړم نـاز دې لـه خنـدا سـره

سرې ستر ګې مې نه ګوري، نښه د عمرو شوګير
ډوب په نيمو شپو يې کړم ناز دې له خندا سره

هېڅ په خود کې نه يمه، ګرځم بېګانه له ځان
خدايږو د پردو يې کړم ناز دې له خندا سره

څه چارې دې وکړې را، ورړم چې ناز د کس ناکس
څنګه بې پښتو يې کړم ناز دې له خندا سره

اوس نو راته خانده ته، څو چې دې هوس کېږي
سر په زنګونو يې کړم ناز دې له خندا سره

دا په بېکسيار باندې، ستا منت د عمر شو
ګډ په غزلو يې کړم ناز دې له خندا سره.

عبدالمالک بېکسيار

# غزل

راګوري چې قدم بړدمه په څوکو د ازغو
پرهر د زړګي سم بړدمه په څوکو د ازغو

سپرلیه چې بیا نه کړې ګل په وینو کې غرقاب
ورځمه پرې قسم بړدمه په څوکو د ازغو

چې هر وارې درګورمه اشنا زخمي سینه
د ګل په څېر هردم بړدمه په څوکو د ازغو

لااوس هم په نظر ویشتلی زړه وایم چې روغ
ساده یمه ملهم بړدمه په څوکو د ازغو.

رقیبه د ارمان څلي ته څېرېم بېکسیار
خپل ژوند کې یو وخت هم بړدمه په څوکو د ازغو

عبدالمالک بېکسیار

# د خیال په څنګ

ګوره زړه د خیال په څنګ مه زانګه
هسې د وصال په څنګ مه زانګه

ستړی تصور مې درختی نه شي
بس نو د هلال په څنګ مه زانګه
غېږ کې به دې خدایږو که څوک ونیسي
هسې د وبال په څنګ مه زانګه
څنډه به دې نظره وهي ګرد غونډې
ګلې د مسال په څنګ مه زانګه

روغ یې بېکسیاره کړې په مړو حساب
ډېر د چاپېریال په څنګ مه زانګه.

عبدالمالک بېکسیار

# د هوس په شونډو

تا د سرو ګلو په ساحل کې
د وربمو په اوربو
سرې تلې ایښې نرمې
او د غوټو په ژبه
د ښپو مستې نغمې
تکرار وې په ناز ناز
او
د انکار په سترګو برندې برندې
ګورې اوبه اوبه
مینو زړو کې
د سترو هیلو پښېمان جهیل ته
او لکه شوې چې وې
د خوشالو جام له ازله یو د تا په برخه
په لاهو شوو
باندې خاندې د هوس په شونډو

عبدالمالک بېکسیار

# غزل

ناست یم غمزده نن د اشنا غزل لیکم
ګورم یې تصویر ته په ژړا غزل لیکم

د مینې کور ودان و په کې ګرځېدم خوشال
اوس وران د مینې کور شو چې تنها غزل لیکم
په ښار کلي کوڅه کې پسې ګرځم شاوخوا
وفا نه شته مجبور یم په جفا غزل لیکم
ته زما د سترګو تور او د زړه سر یې دلربا
له تا مې ګیله نه شته په دنیا غزل لیکم
ګرېوان مې تراټې شو په اوښکو باندې لوند
په سرو ګلو ژړېږم په ژړا غزل لیکم

اخر به پرې یادېږم زه روښان دلته ضرور
پر وخت د زنکدن باندې چې ستا غزل لیکم.

الله داد روښان

# امن او جنګ

باز: زه یو سور شهباز یمه لوړ په پرازونو کې
تـه سپینه کوتره یې کښته په سیلونو کې

کوتره: ګرځمه په تږو کې پل په اسمان وینم ستا
ځکه اوس پرواز کوم زه په دې دښتونو کې
زه یاغي کوتره یم هېڅ څوک مې نیوی نه شي
ځکه الوتل کوم لوړو غرو رغونو کې

باز: دا خوني پنجه به زه ستا په وینو سره کړمه
بیا به الوتل نه کړې هېڅکله په غرونو کې

کوتره: زه د سولې لور یمه لوړ مې دی ارمان همېش
څوک چې ځغلي ما پسې مري به ارمانونو کې

باز: امن امن څه کوم امن د بېوسو کار
زه خو هغه باز يمه ځای مې دی په غرونو کې

کوتره: ډېر په ځان مغرور يې ته، سر په سر سرونه شته
چا چې سوله نه غوښته وسول په اورونو کې

باز: هر څو که نعرې کړې ته نعرې دې څوک نه اوري
لاړه به له مانه شې ته په اسمانونو کې

کوتره: واوره ای روښانه ته، زور او ظلم پای لري
زه د امن چغې کړم ټولو ولسونو کې.

الله داد روښان

# د وطن مینه

چې په درد د خپل وطن هرڅوک سوزېږي
ژوندي پایي که ظاهر کې فنا کېږي

چې مین وي د وطن په کاڼو، بوټو
قربانۍ ته د فرهاد غوندې درېږي
چې شهید شي د وطن په خدمتونو
نوم یې تل په تاریخونو کې ځلېږي
سزاوار د دغې مینې هغه څوک دی
چې په مینه د وطن سر نه تېرېږي
د وصال شپه کې شهید تابوت چې راوړي
مېرنو کې قهرمان اتل یادېږي

کریمه به قهرمان شعرونه لیکم
اتلواله اتلانو ته رسېږي.

کریمه لمبه

# بې ننګ زړګي ته

زمـــا ملګـــري د پنجـــاب پـــه زولنـــو کـــې پراتـــه
بې ننګ زړګيـه ستـا فکرونـه شونډو سرو کې پراتـه

شـونډې بـه څـه کـړم چې د خپلـو خلکـو وينـې وينم
پښـــتنې خوينـــدې ســر ســرتورې بــې پړونــې ويــنم

زمـــا د خوينـــدو عزتونـــه د بـــل پـــه پښـــو کـــې پراتـــه
بې ننګ زړګيـه ستـا فکرونـه شونډو سرو کې پراتـه

چـا چــې پــه ژونـد کــې يــو ارمـان د ازادۍ درلــوده
د پښـــتونخوا د لـــوی وطـــن د خپلـــواکۍ درلـــوده

هغـــه ملګـــري بـــې کفنـــه هـــديرو کـــې پراتـــه
بې ننګ زړګيـه ستا فکرونه شونډو سرو کې پراتـه

څوک چې په خپل ښکلي وطن کې د بل چا نوکر وي
پـه خپـل شـتمن وطـن کـې وږي لـه هـر څـه نهـر وي

وايـم د هغـو دي هـر څـه پـه جنګېـدو کـې پراتـه
بې ننګ زړګيـه ستا فکرونه شونډو سرو کې پراتـه

اختر خوشال

# غزل

ستا د حسن تقاضې دې شي به تېرې
دا څو ورځې دې نخرې دې شي به تېرې

دا بې تاجه پاچاهي به دې په شا شي
د غرور دې دا څو شپې دې شي به تېرې
په ژړا او په فریاد درته شوم ویلې
هر نفس کې مې ګیلې دې شي به تېرې
افغان سر مې سرو ګولیو ته ټیټ نه شو
خیر که تا ته مې سجدې دې شي به تېرې
ساقي مستې پیالې ورکړه چې نشه شي
د خوښۍ یې دا شیبې دې شي به تېرې

ستا ښکاري سترګې مې ښکار کړې زه خوشال یم
دا د مینې مرحلې دې شي به تېرې.

اختر خوشال

# د حیا په اور

د یو اختر په ورځې
له انتظاره لرې
سترګه په سترګه شولو
ما خو هم ستا په سترګو
خواږه، خواږه خیالي خوبونه لیدل
په دواړو سترګو کې مو
د زړه درزا جوته
خو!

زما له بده بخته
دونه حیا په پښتنه غیرت کې
بېواکه ونغښتله
هله مې سترګې د حیا له اوره
لکه د شمعې ویلې شوې اوښکې
پر ځمکه پرېوتلې
پرهر په زړه پاتې شو
ځکه مې تاته د اختر د ورځې
مبارکي ونه ویل!.

صفیه صدیقي

# د مینې دنیاګۍ

همدا چې په سینه کې مې غمونه نه ځایېږي
د سترګو په کاسو کې مې اورونه نه ځایېږي

ګرېوان اختیار بایللی مې سیلو ته دی د اوښکو
ماشوم زړه کې مې خدایږو دا رنځونه نه ځایېږي

رېباره یار ته وایه چې د خدای لپاره راشه
محل کې مې د مینې پېغورونه نه ځایېږي

تصویر د چا د عشق مې تصور کې ځای پر ځای دی
دا ځکه مې په سر کې نور فکرونه نه ځایېږي

که سل راته عالم د لېونو په سترګه ګوري
د مینې لېونتوب کې مې عقلونه نه ځایېږي

دا ولـــې مــا پــه مینــه کــې ملګــرو ګرمــه بــولئ
ربنــتینې دنیــاګۍ کــې مــې رســمونه نــه ځــایېږي

پــرون چــې مــې اشــنا راتــه وعــده د دیــدن راکــړه
د زلفــو پــه کمځــو کــې مــې ګلونــه نــه ځــایېږي

چــې مــاتې هتکړې مې کړې د مینې پروا نـه شـته
خــاطر د لېونــو کــې مــې جېلونــه نــه ځــایېږي

ســرخي ویــنم شــفق کــې دا یــې زړه پــه مــا ســېزلی
پــه شــعر د صــفیې کــې نــور غمونــه نــه ځــایېږي.

صفیه صدیقي

# د خزان غېږ

تـا چـې یادومـه نـو ګرېـوان پـه اوښـکو ولامبـي
یـاره انتظـا کـې دې هجـران پـه اوښـکو ولامبـي

واخلـه ژونـده واخلـه سـتا خوښـي شـه مبـارک درتـه
پرېږده چې سینه کې مې خپګـان پـه اوښـکو ولامبي

دې زاړه ګوګـل کـې دې زړې زړې کیســې پرتـې
ځـوانې شـئ ای هیلـو چې حیـران پـه اوښـکو ولامبي

تـا بـه پـه ګرېـوان یـا د وربـل لـه پاسـه وسـاتم
پټ پـه زړه کې ښـه یې چې ګلان پـه اوښـکو ولامبي

پرېږده چې مې مینه د هر چا په زړه کې وغورځي
پرېږده حسرتو کې مې اسمان په اوښکو ولامبي

پرېږده چې دا ځیرې ګرېوان نور هم پسې ځیرې کړم
څو سوي ګوګل کې مې ارمان په اوښکو ولامبي

ګل د پسرلي وم د خزان په غېږ کې مړاوی شوم
پرخه د سهار شه چې خزان په اوښکو ولامبي.

صفیه صدیقي

# کله نا کله

پــه زړه کــې د ليمــو چــې اوســېدې کلــه نــا کلــه
د اوښــکو پــه بــاران بــه لمبېــدې کلــه نــا کلــه

که هلته به ځای نه و د زړه کور کې به مېشته وې
توپــان کـــې د اهونـــو ورکېـــدې کلـــه نـــا کلـــه
ارمـان چې دې د هجـر تـورو شـپو تـه تنهـا پرېښـوم
کـه نـه زمـا ترخنـګ بـه سـوځېدې کلـه نـا کلـه
شـي شـپه په سـودا تېـره او سپېدو تـه مـې نظـر وي
پــه ســترګو کــې چــې هلتــه خند بـدې کلـه نـا کلـه

اشـــنا چـــې مـــې منلـــې جفـــا ګـــانې خپـــه نـــه وم
لــه هجــره بــه مــې اوښــکې بهېــدې کلــه نــا کلــه.

صفيه صديقي

# د محبت ګلونه

مالي ګلونه کره
په هغو زړونو کې چې
د شاړو دښتو په شان، وچې سپېرې پرتې دي
په څېر د کاڼو دي، دوی چې الفت نه پېژني
د دغو کلکو زړونو، ددې سپېرو ډاګونو
هوا بدله کړه ته، فضا بدله کړه ته
ورته رڼا وبښه د رنګارنګ ګلونو
بیا به یو لاس شو سره
کاڼي به وچوو موږ
د هغو زړونو شاړو دښتو ته به
د محبت له ویالې، اوبه په لپو راوړو
بیا به خړوب شي هغه
په کې به وټوکېږي
د محبت ګلونه.

صفیه صدیقي

# تپوس

ســترګو نــه دي وپوښــته دا کتــل کتــل څــه دي؟
غشـي پـه ګوګـل زمـا سـر پـه سـر ویشـتل څـه دي؟

ســتا د محبـت پـه تـور ښـه شـوه چـې تورنـه شـوم
ســترګه د ســبا ښــه یــم اوس نــو پتېــدل څــه دي
چا ویلې چې ستا د عشـق، ګـل راشـوکوی نـه شـم
سـر پــه سـر ګلونــه مــې یـاره پــه وربــل څــه دي؟
رنـځ د خـوږې مینـې دې پـټ پـه زړه کـې سـاتمه
اوښــکو تــه حیرانــه یـم داســې ویــر کـول څــه دي؟
پرخــه شــومه پرېــوتم پښــو تــه دې اشــنا پــرون
خاورې شـوم ایرې شـومه اوس دې نو ژړل څه دي؟

زړه د صـــفیې درتـــه پټـــې دعاګـــانې کـــړي
لوړ همت مې لوړ ښـه دی جـار بانـدې ویـل څـه دي؟

صفیه صدیقي

# د سولې لمر ته

ته راته خاندې
شونډې موسکۍ دې وينم
دا ستا په سترګو کې يو زېری د خوښۍ وينمه
ښايي چې ماته يې پيغام راوړی
ښايي چې ماته يې د اوږد وير انجام راوړی
که نه خو دا سترګې غمجنې وې تل
که نه خو دا زړګی غمجن و مدام
که نه خو جنګ و تل جګړه وه
د ګوليو ډارونکی غږ و
که نه خو وير و تل ماتم و او ژړاوې به وې
تل به ځوانان په وينو رنګ و دلته
تل به وې بورې او وير جنې ميندې

دلته وې کونډې یتیمان بې شمېره
دلته خوښي
دلته خندا
هېڅ نه وه
اوس چې ته خاندې، خاندې
شونډې موسکۍ دې وینم
دلته د جنګ ورځې ختمېږي نورې
ځکه ددې وطن د مور په غېږ کې
هر څوک چې وینمه په شونډو یې
د سولې نغمه
خوره، خوره ښکاري.

صفیه صدیقي

# غزل

ګران د بېلتون راته وختونه ښکاري
پر زړه زما سوي داغونه ښکاري

دا ستا د مینې د خاطر لپاره
ماته خارونه هم ګلونه ښکاري

خدایږو یوه که مې ارزو پوره شي
د حسن نیت که فرېبونه ښکاري

چې په کې ستا د ښکلا ذکر راځي
ځکه خواږه مې تول شعرونه ښکاري

چې نظر وکړم لېونۍ مینې ته
خوشې عبث راته خوبونه ښکاري

چې ورې دیدن اوس د اغیار کلي ته
خاورې به خود زما امیدونه ښکاري

نراشه ورشه د یادونو چم ته
څه دې په زړه کې نن خیالونه ښکاري.

محمد ریاض نراش

# کسات

زه د ارزو په مخ
د زخمي ژوبل شهید شوي احساس
له نا امیده او نا ښادو
وینو
یو څو خالونه کېږدم
خو ته حسرت یې
د غرور په الماسینو نوکو
د چا د مکر د تسل لپاره
بې لوره وشپېلوي
بیا د خیال
د ناوې

سپېرې، زړې ډولۍ ته
په کوڼ نظر وګورې
او په کړس، کړس وخاوندې
خو
رنګ دې ژېړ شي
ژړغونې شې ته!

ممتاز

# د اور څپې

ما د لمرین حسن د اور په څپو
د پېغلو، پېغلو او ناښادو هیلو
د بې درملو نامرادو ارمانو په خاطر
لکه
لیتکی
ځان ډوبول غوښتل
خو
د بې لورې
او بدنامې بوډۍ
د تورې شپې بچیو
زموږ په کلي
د سکروټو باران ووراوه
او
ان کوڅه کې
د حسرت په څاڅکو وڅڅېدم.

ممتاز

# د لېمو په لار

په مینه کې مجنون شه د فکرو په لاره مه ځه
منصور شه ابدي شه د شېبو په لاره مه ځه

د سرو شونډو موسکا شه په هوس، هوس مې ښکل کړه
احساسه لېونیه! د لېمو په لاره مه ځه
د شمعې ځنګ کې کېنه ژوند کول ورځنې زده کړه
پتنګه ځوانیمرګه د لمبو په لاره مه ځه
قدم ګوره پښتون یږده چې ګودر د پښتنو دی
غروره! ماتوي دې د پردو په لاره مه ځه
د مینې سرو لمبو ته له تکل سره رادانګه
تنکیه! ګلالیه د نخرو په لاره مه ځه

خفه نه شي ګرېوانه زړه حره د قلندر ده
غمونه چې راتله نو د ګیلو په لاره مه ځه.

ممتاز

# د حسرت شغلې

کله منزل کله ډېوې وسوزي
کله شفق کله سپېدې وسوزي

د حيرت تاو کې د حسرت د شغلو
کله لمبې کله ايرې وسوزي
فطرت يې سيزي د غربت په لوګو
کله نصيب کله وعدې وسوزي
حسنه! چې تا په مړو کتو ووينې
عشق اورين شي ارادې وسوزي
د وخت نادودو کړم لوګی غرور ته
کله مې سر کله پښې وسوزي
چې د حسرت د خيال کوڅې ته درشي
زما د ذهن زلزلې وسوزي

د احساس سترګو کې تکذيب تهذيب شي
تالو مې وچ شي او ګيلې وسوزي.

ممتاز

# غزل

د درد په هر یو تال کې مې ښکاره شه ته اشنا
ستي ستي زړګي ته مې نغمه شه ته اشنا

د تا د یاراني غمونه ډېر لرم په زړه
لیدو ته یې لېږ شان په تماشه شه ته اشنا

نشه د میو شرم کړي نشو نه ستا د عشق
د زړه د عشق دېره کې مې مېلمه شه ته اشنا

د مینې په انګار زه مینه اوړم ستا په عشق
امید او ارمانو ته مې اسره شه ته اشنا.

نادیه مینه
۱۸/۸/۱۳۶۶

# د زړه درد

د زړه درد مې لا زیاتېږي حیرانېږم
له دې خپلې بې خبرۍ نه، نه خبرېږم

ستا د زړه د تور توپانه نه ډارېږم
زه پښتون یم د ننګ اور کې خوشالېږم

د خپل وار چې منتظر وم وار زما دی
او زما د وار نه ټول جهان اګاه دی

ما کلونه ستا تر جبر لاندې تېر کړل
تا بچي مې د اولس يتيمان ډېر کړل

ولې تا د پښتون دا روايت هېر کړل
دښمنانو کله هم پښتانه زېر کړل؟

ګورئ ورونو دی چې نن زما په خوا دی
ده ويل به دا کافر د پښتونخوا دی

نن زړګی مې د پښتون په درزېدو دی
چې له خوبه مې هر ځوان په ويښېدو دی

له وطنه مې دښمن په تښتېدو دی
کړئ پرې چغې اباسين په خندېدو دی

په چمن کې چې هر ګل يې په خندا دی
ای فيروزه دغه ښکلی وطن ستا دی.

فيروزشاه

# غزل

بخت مې د مينې هسې خوار وينم
اغيار په څنګ کې چې د يار وينم

زړه په ګوګل کې ناقراره شي لا
يار مې په لار چې د اغيار وينم

هر څه به تېر شي خو زما زړګيه!
خير که خندا د عشق په دار وينم

لکه بلبل د ګل په مينه باندې
مدام سينه کې د ګل خار وينم

بدره! دا ستا د اميدونو کور کې
د سرو ګلونو سور بهار وينم.

صديق الله بدر
۱۳۶۶ جدي

# د زړه خبرې

چې راته کله کړي په خوله خبرې
ماته معلومې شي د زړه خبرې

وړوکی نه یم چې به هېره شي ته
هېر به دل تل وي د واړه خبرې

وړی دا ستا د مینې موړ به نه شي
مینه کې نه کړم د ماړه خبرې

وایم چې تل وای خوا په خوا راسره
چې مو کولای د هر څه خبرې

مین زړګی چې راته نه ژړوي
بدره مه کړه د بېلتانه خبرې.

صدیق الله بدر
۱/۱۰/۱۳۶۶

# غزل

زه چې شرابي يم له نشو سره ملګرى يم
يم چې مين شوى شونډو سرو سره ملګرى يم

ماته د دوزخ د لمبو څله يادونه کړې
دلته د جانان د مخ شغلو سره ملګرى يم

لار د ژوندانه مې له غمونو سره سترې ده
ځکه تل د ژوند له اندېښنو سره ملګرى يم

ځم چې د ساقي د حال پوښتنه خو هم وکړمه
تل يې له نشو ډکو جامو سره ملګرى يم

راز زما د مينې چې په زړه کې تل ساتي بدره
هسې له راز ډکو زمانو سره ملګرى يم.

صديق الله بدر

# غزل

د حسن ټال ته ورختمه زنګېدمه په کې
د ګړنګونو به لوېدمه مګر تلمه په کې

د چا په ناز خندا خرد له مانه لاس واخیسته
د جنون اور کې سوزېدمه اوسېدمه په کې

د زړه په وینو ګوره هسې اوښکه ځان بدلوي
د ګرېوان ډنډ کې ډوبېدمه ورکېدمه په کې

د هجر ګوتو یې زما د زړه ارمان څیرې کړ
سر په صحرا به ګرځېدمه کړېدمه په کې

ساقي پيالې دې ډکوه چې نن يې وار راغلی
ډېر يې په تمه تاوېدمه ځورېدمه په کې

دا ستا د عشق په سوزونکي اورنۍ بټۍ کې
لکه نينه به جګېدمه لګېدمه په کې

دا د ارزو د شونډو سره دې چې پرهر ښکلوي
د حسرت اوښکې پاکومه خندومه په کې

ستا د رخسار او اننګو له قاروني خزانې
خالي کچکول راووتمه ژړېدمه په کې.

محب الله خپلواک
۴/۳/۱۳۶۲

# غزل

اسمان ته زه د خیال په سر درو کې وختم
سپین مخ ته د اشنا چې په کمڅو کې وختم

توبې خو مې زاهد ته له پخوا نه وې وېستلې
تقدیر دی چې په لیکه د پیالو کې وختم

پښتو غیرتي هوډ به مې هېڅ وخت تغیر ونه کړي
منزل ته که په څوکو د چړو کې وختم

قسمت که مې ښه بولئ نو له دې نه بل څه نه شته
بس دا چې په نامه د پښتنو کې وختم

د حسن په زنځیر چې نن د عشق زندان کې بند دي
محبه! نور نو هغو لېونو کې وختم.

محب الله خپلواک
۱۳۲۲ل کال

# غزل

زما د هیلو سره ګلان بیا په خندا ښکاري
ځکه رقیب بیا په غمو کې په ژړا ښکاري

خمونه تش جامونه تش دي د یارانو زموږ
ځکه خو ورانه میخانه نن خوا په خوا ښکاري

کله چې کیږدي په چمن کې قدم مینه زما
د ګل په ښکلو ښکلو سترګو کې حیا ښکاري

نن مې په لاس کې د ساقي پیاله د مې ولیده
ځکه شراب راته جامو کې په نڅا ښکاري

کله چې ګورم د اشنا سترګو ته مینه باندې
په کې امید او سور ارمان مې د سبا ښکاري.

زهره ځپه

# غزل

یو وار مې ته په مړوندو ویده که
بیا مې په خاورو او ایرو ویده که

زه د مودو په لمرو سوی یمه
ته مې د زلفو په کمڅو ویده که
زه د ګلشن ګلونه نه غواړمه
خزانه ته مې په اغزو ویده که
ګوندې رباب مې ستا کې درد در قرار
مطربه لږ مې په نغمو ویده که
ولې دې لرې کړم له ځانه څخه
لږ مې په خپلو زنګنو ویده که

زه قدردان پاس په هوا چې راغلم
ما لکه زیری په بڼو ویده که.

محمد یوسف قدردان

# غزل

چې د وینو مې ښکاره سره فوراه شي
غیر ددې نو ای دلبره څه چاره شي

دا پرهر دې په تصویر کې د خیالونو
که د هیلو غوټۍ خاندي راښکاره شي

ای د مینې رقیبانو ځان ته ګورئ
دا کارونه به د خلکو تماشه شي

ښه شوی چې وي تیر کې د اهونو
رنځیبدلی، در په در او اواره شي

چې ښکاره شوه زما اوښکو کې شوه پټه
ارمـــاني يمـــه ترڅـــو چـــې دوبـــاره شــــي

صـبر نـه لـرم پـه عشـق کـې نـه پـوهېږم
پـه دې کـار کـې مـې زړګـی پـاره پـاره شـي

کـــه تـــه يـــو ځلـــې نظـــر وکـــړې دلبـــره!
د جمشـيد ځـای بـه تـابوت نـه ګهـواره شـي.

جمشيد

۲۱/۱۰/۱۳۶۲

# پښتنې انداز

ستا که په وعدو پسې وعدې نه وای
جوړې به د اوښکو قافلې نه وای

ما به بې شک هله بل نیولی وای
یار مې که ولاړ منګولې سرې نه وای

خیر که ستا د عشق په اور کې سوی وای
بل که د اغیار په اشارې نه وای

ژوند به حوصله وخته خوړلې وه
ستا دغه ترخو کې که خوږې نه وای

ما به درته هله برند کتل کاوه
ستا که هر انداز د پښتنې نه وای.

علم

# غزل

اخلـو بـه قـدم د اور پـه مـخ بـه ځـو
نـه بـه کـوو غـم د اور پـه مـخ بـه ځـو

سـتورو تـه بـه ګـورو لنـډوو منـزل
نـه بـه کـوو دم د اور پـه مـخ بـه ځـو

وایـو بـه ملګـرو دا یـوه او بـس
کـور تـه د صـنم د اور پـه مـخ بـه ځـو

ځـو بـه د منـزل تـر رسـېدو پـورې
اخلـو بـه قسـم د اور پـه مـخ بـه ځـو

پـوه کـه مـې پښـتون اشـنا پـه دې نـه شـو
سـوځو بـه قلـم د اور پـه مـخ بـه ځـو.

علم

# غزل

ستا کـه د زلفـو سلسـلې خـورې ورې پرتـې دي
دلتـه لـه غـم نـه ډکـې شـپې اوږدې اوږدې پرتـې دي

راشـه تـه وګـوره د زړه خونـه چـې څـه دي پـه کـې
ډېـرې خبـرې او ګیلـې نـوې زړې پرتـې دي
ټـول امیدونـه شـول بـدل پـه حسـرتونو بانـدې
ځکـه مـې اوښـکې پـه ګرېـوان د میکـدې پرتـې دي
مـا سـره څـه دي ای رقیبـه نـور مـې مـه څـوروه
ستا د کـردو مـې پـه زړګـي ډېـرې ترخـې پرتـې دي
کلـه چـې راشـمه لـه خـوده بـې خـودۍ دنیـا تـه
بـس هـره خـوا کـې خوشـالۍ دي او مـزې پرتـې دي

دا ابتـدا ده د منـزل لاانتهـا چېـرې ده
د یـار درشـل تـه خـو لاډېـرې ورځـې شـپې پرتـې دي.

علم
۳/۲/۱۳۶۲

## پښتنه مينه

د زړه محفل کې مې ستا مينه په نښا ښکاري
ځکه ويجاړه راته دا ښکلې دنيا ښکاري

ستم جفا دې د زړه کور راته پخوا وران کړی
که راته خاندې ما ته هم ظلم، تعدا ښکاري
هر دم مې هيلې ارزوګانې د زړه کور کې ګرځي
په هرې هيلې کې قسم دی چې نوم ستا ښکاري
که د حسرت اوښکې په مخ مې بارانونه جوړ کړي
ما ته د يار په درد او غم کې لادوا ښکاري
د زړه قطرې مې ستا د مينې ناکردو ته ورکړې
زخمي زخمي زړه ته مې دا مينه شفا ښکاري

د پښتني مينې د ننګ او پت ساتو په خاطر
د پلوشې مينه کې يو جهان حيا ښکاري.

پلوشه ساپۍ

د کاکاجي صنوبر حسین د غزل په اقتضا

# غزل

بیـــا کـــه مـــې لـــه زړه وتـــې چغـــارې دي
خـــدايږو چـــې د مینـــې داســـې چـــارې دي

زړه چـــې مـــې زخمـــي شـــو د جفـــا پـــه تېـــغ
ښـــکاري چـــې دې ســـترګې لاخونکـــارې دي

کلـــه بـــه یوځـــل هـــم خطـــا ونـــه کـــړي
دا ښـــــــتني ســــــــترګې حیـــــا دارې دي

تـــه راشـــه د اوښـــکو قافلـــه ګـــوره
ســـتا راتلـــو تـــه ناســـتې انتظـــارې دي

زه خـو سـتا د عشـق ځپـه کـې خوښـه یـم
ځکـــه اند ېښـــــنې رانـــه فـــــراري دي

هـم چـې مـې پـه سـترګو کـې سـتا عشـق سـاتم
دې کـــــې د پښـــــتو ســـــپېڅلې لارې دي

کـــړی مــــې تکـــل د مینـــې لار کـــې دی
خیـــر دی پلوشـــې تـــه کـــه دشـــوارې دي.

پلوشه ساپۍ

# دا کور یوازې ستا دی

ما ستا په سترګو کې دنیا ولیده
د مینې دنیا
د هیلو کور مې په کې جوړ کړ
ستا عشق په کې مېلمه و
او مېلمه به مې ساتلو
ما ویل چې
دا مېلمه مې خفه نه شي
دنیا به مې د مینې ونړېږي
خدای مه کړه
چې کورګی دا ستا د مینې
ویجاړ شي په غمونو

دردونه ژړاګانې به ترې واخلم
بس ته په کې مېشته شه
دا کور زما د هيلو
ستا د مينې ستا د عشق دی
يوازې ستا پښتونه!
ستا پښتو زما حيا ده
بس ته په کې اوسېږه
دا کور يوازې ستا دی.

پلوشه ساپۍ

# غزل

وختــه تــا لــه ورځــو شــپو ســره اشــنا کــړم
تــا د ژونــد لــه تقاضــو ســره اشــنا کــړم

مــا یــوازې مســافر ګڼلــو ځــان خپــل
مســافت لــه قــافلو ســره اشــنا کــړم
هســې مــا بــه بــې مقصــده قــدم واخیســت
خــو تــاریخ لــه فیصــلو ســره اشــنا کــړم
پــه خپــل خیــال بــه مــې هــدف ځــان تــه نــږدې کــړو
اوس منــزل لــه فاصــلو ســره اشــنا کــړم
کــه هــر چــا مــې لار جــدا کــړه جــدا نــه شــوه
اخیــر وینــې لــه نســلو ســره اشــنا کــړم
چــې کېــدې پــه کــې خبــرې ســتا د حســن
عشــق لــه هغــو محفلــو ســره اشــنا کــړم

زمــا بهــار پــه قــابو خپــل نــه دی خپــل زړه هــم
وایــه ځنګــه سلســلو ســره اشــنا کــړم.

تیمورشاه بهار

# د وطن هجر

چې افغان له بل افغان نه جدا کېږي
د نفاق ډیوه به نوره هم بلېږي

نو راځئ ورونو راځئ چې سره یو شو
په بېلتون باندې وطن ټول خرابېږي

د ورورۍ لاسونه ورکړئ وطنوالو
په ورورۍ باندې هر څه زموږ جوړېږي

بل د جنګ لمبې د عشق په اوبو مړې کړئ
د ژوندون جرس په دغه ښه غږېږي

دغه خوږ وطن ته راشئ عطا وایي
چې دا خوږ وطن په هجر کې کړېږي

عطامحمد

# غزل

د زلفو تسلسل کې چې تیارو ته رسېدم
په جګو تیټو لارو امیدو ته رسېدم

دا ټول ښایسته چمن شولو زما په وینو رنګ
چې زه کله دا ستا د زلفو غرو ته رسېدم
مات نه شولو نن مرګه دا زما پښتني هوډ
قاصده په همت خپلو وعدو ته رسېدم
ماځان کړلو پیدا ستا د ښایست په تصور کې
پیدا مې نه کړې ته که زولنو ته رسېدم
په اور د جدایۍ شوله ځواني زما لوګی
په طمع د وصال وم سرو لمبو ته رسېدم

اشنا د ښایسته او د خوږې مینې له لاسه
که نه زه کله دې شاړو مېرو ته رسېدم.

عبدالله پانوس
۱۳۲۲/لیندۍ/۲۵

# غزل

چې د یار په ښادۍ ښاد وي اغیار نه دی
وفادار دی ستا له مینې بېزار نه دی
دا تیارې د انتظار په ما خورې دي
که د هجر توره شپه ده سهار نه دی

خلک ولې لېونی وماته وایي
لېونو سره خو هېڅوک غمخوار نه دی
که مې ولیدې په ویښه نو دیدن دی
د خوبو دیدار حساب په دیدار نه دی

انتخاب مې د یو ګل وکړ ګلشن کې
چې یو یار لرمه بل مې په کار نه دی
د غمونو په یرغل کې شو یوازې
که بدر د خوشالۍ طلبګار نه دی.

شفیق احمد بدر

# غزل

د هجـــران پــه تـــورو شـــپو کـــې مـــا ژړل
پـــه اهونـــو اســـوېلو کـــې مـــا ژړل

تـــه د چـــا شـــې د رقيـــب شـــې کـــه زمـــا
ټولـــه شـــپه پـــه دې ســـوچو کـــې مـــا ژړل

بـــې لـــه هجـــره څـــه دی کـــار د مينـــانو
د وصـــال پـــه اند ېښـــنو کـــې مـــا ژړل

اشـــنا څنګـــه بـــې خبـــر وې زمـــا لـــه حالـــه
چـــې پـــه اوښـــکو شـــوګيرو کـــې مـــا ژړل

تـــه د چـــا د وربـــل ګـــل يـــې نـــه پـــوهېږم
ســـتا پـــه يـــاد ترخـــو شـــېبو کـــې مـــا ژړل.

ساجده عبدالله ميلاد

# غزل

ټوله شپه غم د جانان مې ژړوي
توري سترګې اوچت شان مې ژړوي

په ژړا او په غمو شوه ځواني تېره
هر يو دم غم د هجران مې ژړوي

د احساس د اور په غېږه کې لوبېږم
د يتيم څېرې ګرېوان مې ژړوي

ټول عالم شو خبر دار زما له مينې
چې خبر نه دی جانان مې ژړوي

زما مينه زما هيله زما ژوند دی
ستا يادونه ستا ارمان مې ژړوي.

ساجده عبدالله ميلاد

# شاهین نظر

حســـنه پـــه لېمـــو مـــې ولـــې تـــه ولـــې
دومـــره پـــه تېغـــو مـــې ولـــې تـــه ولـــې

غـــوخ دې کـــړه نظـــر رانـــه شـــاهین نظـــر
بـــس دی پـــه پنجـــو مـــې ولـــې تـــه ولـــې

خیـــر کـــه تـــه برېښـــنا مـــې تـــر نظـــر شـــولې
نـــور پـــه تهمتـــو مـــې ولـــې تـــه ولـــې

مـــا کـــه ګناهکـــار د خـــم پـــه غـــلا نیســـي
بـــس نـــور پـــه توبـــو مـــې ولـــې تـــه ولـــې

پرېـــږده د عقبـــی خبـــرې هلتـــه کـــړو
دلتـــه پـــه ښـــېرو مـــې ولـــې تـــه ولـــې.

حبیب الرحمن قربانخېل

# غزل

د زړه پـه سـر بانـدې اشـعار ليكمـه
پـه كـې ښايست ستا د رخسـار ليكمـه

كلـه ګلشـن كـې لـه ګلونـو سـره
زه افسـانې د ګـل او خـار ليكمـه
سـپېرو بـادو كـې د خـزان زه مـدام
خـواږه بيتونـه د بهـار ليكمـه
تـل دا سـتانونه بـه زه سـتا د جفـا
د بېلتانـه پـه هـره لار ليكمـه
شـرمېږې تـه زمـا پـه خـړو جـامو
سـتا بـه دغـه پېغـور و عـار ليكمـه

زه مبـارز د زړه پـه وينـو بانـدې
د خپـل جانـان شـرين ګفتـار ليكمـه.

عبدالغني مبارز

# پسرلی شو

د وطـــن پـــه جګـــو غرونـــو
نـــوی ســـاز زمزمـــه کېـــږي

د ســیندونو پــه موجــو کــې
د ژونــدون نغمــه تــاوېږي

د ســـپېرو خـــاورو لـــه منځـــه
ســـره ګـــلان پورتـــه جګېـــږي

وچــې دښــتې شــوې ګلونــه
بلبــل خــوښ دی او خنــدېږي

د مرغـــــانو کتارونــــــه
د ګلشـــن پـــه لـــور خـــوځېږي

مصـــلحت کـــړی ګلانـــو
غـــر او ســـمه زرغـــونېږي

پـــــه بلبلـــــو بوراګـــــانو
حقیقـــــي اختـــــر جـــــوړېږي.

محمد ظفر تنهی

# غزل

شـــېبې شـــېبې د اوښـــکو وروې چـــې رانـــه ځـــې
چـــړې مـــې پـــه زخمونـــو ښـــخوې چـــې رانـــه ځـــې

د نـــاز خنـــدا چـــې وکـــړې پـــه نـــازکو نرمـــو شـــونډو
غـــوټۍ د ســـرو ګلونـــو غـــوړوې چـــې رانـــه ځـــې
ویـــده ټپونـــه ویښ کـــړې چـــې د نـــاز پـــه قـــدم راشـــې
نـــرۍ، نـــرۍ پـــرې مـــالګې دوړوې چـــې رانـــه ځـــې
د هیلـــو بـــڼ مـــې وســـپړې ګلونـــه پـــه خـــزان کـــې
د ســـترګو پـــه ښـــو یـــې رژوې چـــې رانـــه ځـــې
ځیګـــر خـــو مـــې لاهلتـــه پـــه ټوپونـــو بانـــدې راشـــې
پـــه تـــګ کـــې چـــې دې ســـترګې جنګـــوې چـــې رانـــه ځـــې

سور داغ دې د سرو شونډو د هوس پر شونډو پرېږده
یـــو ځـــل خـــو بـــه مـــې ګلـــې ښـــکلوې چـــې رانـــه ځـــې.

**ملوک هوس**
**۱۳۶۶ل کال**

# د اوښکو پیغام

د یـــار خیالـــه رانـــه ځـــي او کـــه نـــه؟
لـــږ پـــه قـــراره مـــي پرېـــږدي او کـــه نـــه؟

ځـــه رانـــه لاړ شـــه نـــور مـــي مـــه ځـــوروه
تـــه چېرتـــه کـــور کلـــی لـــري او کـــه نـــه؟

د زړه لـــه حالـــه خـــو مـــي تـــه خبـــر یـــې
مغـــرور اشـــنا هـــم خبـــروي او کـــه نـــه؟

د زړه پــردې مــې لــه زخمــو ډکــې دي
یــو څــو پټــۍ پــرې لګــوې او کــه نــه؟

چــې یــو پیغــام درتــه د اوښــکو درکــړم
هغــه مــې یــار تــه رســوې او کــه نــه؟

وختــه بلــد شــوم لــه غمونــو ســره
پــه مــا دې زور نــور ازمــوې او کــه نــه

هوســه! تــش خــو دې کــړ زړه پــر کاغــذ
نــور دې غــزل اوس ختمــوې او کــه نــه.

ملوک هوس

۱۳۲۲ل کال

# د محبت کلی

د ښکلا ګل دې د کمځو په ځوکو
د هر عاشق په زړه داغونه وهي

د حسن تېغ دې د مېن په زړګي
څرخي راڅرخي او ټپونه کاږي

د ناز چاړه دې هوسېږي دې ته
چې مې د زړه پردې سورې سورې کړي

تور لونګين دې د سينې په دښته
په اوږدو لارو کې کاروان ځغلوي

ځان رسوي د محبت کلي ته
چې ورته يوسي د خوښيو زېرې.

ملوک هوس
۱۳۲۲ل کال

# د ارمان غېږه

باداره پرې مې نږده چې مړ شم د ارمان په غېږ کې
لکه بېوسه یو انسان د بل انسان په غېږ کې

د سرو ګلونو په موسم کې راته ګوره خدایه
زه لکه ژېړه پاڼه پروت یم د خزان په غېږ کې

ستړي فکرونه په ځانګو کې د حسرت ځنګوم
لکه چې کونډه ځنګوي خپل یتیمان په غېږ کې

د ژوندانه فلسفه څه ده دا و چاته معلوم
په دغه باب کې حقیقت پټ د زبان په غېږ کې

د لېوني غوندې همېش و وخت ته ژاړې څه له
د وخت خوړلي نه جوړېږي د لقمان په غېږ کې

زما همدغسې مسکن او منزل نه دی معلوم
لکه حالات چې خوري څپې تل د خفګان په غېږ کې

ګومان کول که ناروا دي خو عالمه دلته
فکر ټالونه خوري اکثره د ګومان په غېږ کې

لکه توپان چې سيمه رنګه کړي سېلاب راولي
داسې مې اوښکې نن ورغړي د چشمان په غېږ کې

هېڅ رحماني نظر چې خدايه په شهزاد ونه کړې
ښه دی چې ګرځي لېونی ستا د جهان په غېږ کې.

فيض محمد شهزاد

# غزل

د زړه په سر سودا خو ما پرېښوده
اشنا که تا راته رښتیا پرېښوده

خود به ځنګېږي د غرور په نیلو
ما د تورتم په سر رڼا پرېښوده

د امید ګل راته اغزي اغزي شو
سلګو د اوښکو مې ژړا پرېښوده

ملامت نه یم سرې لمبې دي اشنا
د خاطرو لمنه تا پرېښوده

ظاهر غلط شو ستا په ښکلې موسکا
دې فیصلې ته یې دنیا پرېښوده.

**ظاهر شاه، ظاهر**
**۲/۱۱/۱۳۶۲**

# غزل

راپورې بلې سرې لمبې شي چې ځي
د امیدو ډیوې مې مړې شي چې ځي

خپل لېوني زړګي ته څه ووایم
ستا نه یې ډېرې شان ګیلې شي چې ځي

د بېلتانه پر هر رغېړې کله
د غم شپې راته نږدې شي چې ځي

جرګه د خیال مې چاته ولېږمه
چور مې دهیلو قافلې شي چې ځي

ظاهر تنها دجنون کلي کې شو
په اوښکو سرو یې سترګې سرې شي چې ځي.

ظاهر شاه، ظاهر
۱۵/۱۰/۱۳۶۲

## سوې سواره

نور نو کروندې ته د ګودر له لارې نه ځمه
بیا به د کوڅې په ملا کې ستا سترګو ته نه ګورم
په مړاوي غلچکي نظر
نور به دې نامه سره په شونډو کې
مړاوې موسکا نه راځي
پرېږده د غنمو درمند وسوځي
پرېږده چې د ګلو دلۍ اور واخلي
پرېږده چې ډېران شي د ارمان کلی

پرېږده د ښځو ځنګل وسوځي
چې سوې
خوله مې خاورې کړي!
دلته یوه دنګه ښځه، ونړېده
خاورې شوه
مځکو ته مې مه راځه
سوې سواره ده وږي نه شته دي
سترګو ولې نه ژاړئ په مینې پسې؟

احمد تکل
۲۰/۲/۱۳۶۲

# غزل

په زړه پر هار دی راله خوب نه راځي
خپه دا خوار دی راله خوب نه راځي

شپې د شپو چې په راتلو شمېرمه
لرې یې شمار دی راله خوب نه راځي

طبيبه ستا د راتلو لارې څارې
روح مې بیمار دی راله خوب نه راځي

لارې پردې دي په هر لور چې ګورم
پرده بس نګار دی راله خوب نه راځي

د شپو تندي کې چې رڼا ښکارېږي
راروان یار دی راله خوب نه راځي.

فریده هوډ

# غزل

وژنمه دې نن راته اشنا ووې
ما وې زه منمه څه چې ته ووې

له خاطر به کړې د رقيب مخ کې ته
د ېر په احترام مې ورته دا ووې

عشق کې مې مرګ خوښ په څو څو وار دی
ماته که يې تش دا په ادا ووې

بې تا نه مې مرګ د رب په کار نه دی
دروغ دي که صنمه تا رښتیا ووې

دار باندې منصور چې خپله وخاته
تا د امتحان څنګه نن بیا ووې

اور ته د غرور چې عشق ورودانګل
عقل و حیران چې راځه ما ووې

خپل زړه کې دوکه او فریب نه لرم
ځکه مې الفاظ ساده صفا ووې

ودې ښود غزل اسراره طرح کې
خیال دې د حمزه په ملګرتیا ووې.

سرزمین اسرار

# د ښایست اثر

چې سترګې د یار ګورمه جامونه راپه یاد شي
و مخ ته یې نظر کړم سره ګلونه راپه یاد شي

د سترګو په کتو یې زه بې خوده په نشه شم
چې شونډو ته یې ځیر شم سره لالونه راپه یاد شي
دا حسن دا ښکلا او دا جمال چې د یار ګورم
دا ښکلې پوښتنې دا اسمانونه راپه یاد شي
دا توري زلفې ګورمه په څټ یې را اړولې
میدان د پاړوګرو کې مارونه راپه یاد شي

ښایسته دا دنګه ونه دې مثال د تنکۍ لښتې
اثر یې په ما زیات دی چې شعرونه راپه یاد شي.

ملالۍ ساپۍ

۱۳۲۴ل کال

# توده مینه

که مینه غواړې د وطن مینه درنه مینه ده
تر ډېرو ښکلو د وطن مینه ښایسته مینه ده

دا هسې مینه ده چې هېڅ یې هېرولی نه شم
زموږ د ګران وطن سپېڅلې پښتنه مینه ده

د وطن مینه کې وفا ده ای پښتونه وروره
ژر شه وردانګه دا د حورو عجیبه مینه ده

په مینه سرور کول دا د هر مین دنده ده
د خپلواکۍ ټینګول زموږ دیرینه مینه ده

رب نه مې غوښتې چې په دې مینه کامیابه شمه
د ملالۍ له جوشه ډکه دا توده مینه ده.

ملالۍ ساپۍ

# شهید ته

شــهیده لــه ســپېڅلې عقیــدې نــه دې ځــارېږم
د وږو، وږو بچیــانو لــه نــارې نــه دې ځــارېږم
د غیرت په اور کې تاوې دې جذبې نه دې ځارېږم
پــه ګولیــو بهېــدلې وینــې سـرې نــه دې ځــارېږم

مــا قســم کــړی دی ســتا پــه اســوېلیو
چــې دښــمن بــه دې هــر ځــای کــې زه پــه دار کــړم
د دوزخ د اور لمبــو تــه بــې ګــذار کــړم
پــه نــازک ټټــر بــی بــل د اور انګــار کــړم

کــه مــې نــه کــړې ډیــوې ســتا د ارمــان بلــې
بیــا مــې مــه بولــه پښــتون، لــه پښــتنو بــه نــه یــم
شــال راپــه ســر دجنکــو کــړه لــه زلمــو بــه نــه یــم.

فیض محمد تصور
۱۳۶۵ل کال

# د وینو ویالې

د جنګ په اور کې سوزېدلای نه شم
نور نو د خلکو غم زغملای نه شم

اوښکې تویېږي بې بها د خلکو
دا مروارید ارزانولای نه شم
زړه مې چاودلی په غمونو کې دی
دا خوار زړګی زهیرولای نه شم
د ځوانو هیلو ځوانیمرګه ځوانان
په سره کفن کې ښخولای نه شم
بس بوره مور او ځوانه کونډه ناوې
د غم په تال کې زنګولای نه شم
نور د افغان په ښایسته وطن کې
ویالو د وینو ته کتلای نه شم

پرېږدئ افق د خوشبختۍ وځلي
د غمو پېټی په شا وړلای نه شم.

عطیه افق

# امتحان

خیال یې و زړه ته تسلا راولي
مړو امیدو ته مسیحا راولي

مینې خو داسې چارې وکړې په ما
چې هر نفس ته نوم دا ستا راولي

پرېږده د سترګو ننداره دې وکړم
د زړه تیارو ته مې رڼا راولي

وخت امتحان د مینې اخلي راځم
څکه بېلتون راته بیا بیا راولي

ښتني اوښکې به جرګه کړم ورته
که مې یو ځل راته اشنا راولي.

عطیه افق

# د کاڼو باران

وربښمین تارونه به د زلفو څه کړم
څېرې ګرېوان چې پرې ګنډلی نه شم

د خولې خبرې خو دې ډېرې وکړې
خو په عمل کې څه لیدلی نه شم
دا خپل لاسونه به مړوند کې غوځ کړم
چې د قصاب زړه پرې راکښلی نه شم
رنګ ته مې وګوره په خپله پوه شه
حال د زړګي درته ویلی نه شم
هسې مې سبزې په لمبو کې ولې
زه یو قوت یم ورکېدلی نه شم

وخت دې باران د کاڼو وکړي پر ما
زه یې پښو ته تیتېدلی نه شم.

امان الله غلجی
۱۳۶۴ل کال

# غزل

محفل کې شول د سیمې عاشقان لمبه لمبه
په شمع چې شي څنګه پتنګان لمبه لمبه

ښایست دې د سپوږمۍ غوندې ځلیږي په جهان
پرې ځکه شول د کلي هلکان لمبه لمبه

راځه چې یو تربله کړو د مینې دنیا جوړه
چې عشق باندې مو شي ټول غمازان لمبه لمبه

اوس بس کړه لږ خو پرېږده د جفا لمن دلبره
ستا حسن مې د زړه کړ ټول ارمان لمبه لمبه

تر څو به درته ناست زه عالم زیب یم په امید
خوښي مې ټوله کړله ستا هجران لمبه لمبه.

عالم زیب

# کاږه کاته

پتنګه! عشق ته په لمبو وګوره
شمعې! ژړا ته په نخرو وګوره

دلته د ناز په خوبو سر نه شي ته
د مینې کور ته په درنو وګوره

کاږه کتل په سترګو ونه کړې ته
لیلا ښایست ته د پښتو وګوره

نظـــر د بـــدو پـــه زړه څلـــه ســـاتې
دا هـــــدیره د پښـــــتنو وګـــــوره

لـري غیـرت پښـتون پـه سـر کـې همېش
جېــل تــه روان پــه زولنــو وګــوره

دلتـــه مېړانـــه د خوشـــال پرتـــه ده
دا لـــه غیـــرت ډکـــه زانګـــو وګـــوره

دا د پښـــتو د حســـن ډکـــه کـــلا
یـــو ځلـــې بیـــا پـــه تـــاریخو وګـــوره.

**لعل پاچا**

# د هيلو کاروان

د سوي زړګي حال مې له تصوير نه وپوښته
نيمګړې ارزوګانې مې تقدير نه وپوښته

د هيلو کاروانونه مې منزل ته نه رسېږي
د اوښکو سېلابونه مې ضمير نه وپوښته

ما جوړ ورله امېل کړو مرغلرو نه د اوښکو
اشنا پروا ونه کړه دې تقصير نه وپوښته

تنکۍ هیله د زړه نه مې په شونډو کې سلګۍ شوه
سلګۍ بېرته ستنه شوه دې تاثیر نه وپوښته

د سترګو په ګرداب کې مې د وینو جوړ ډنډونه
دنیا په کې غرقېږي اوس تدبیر نه وپوښته

د خیال نیله یې ونښته د زلفو په ولول کې
خلاصی یې ترېنه نه شته له زنځیر نه وپوښته

د یار په غېږ کې خوښ دی هیله من د وصال تږی
هجران ځپلې سترګې له شوګیر نه وپوښته.

محمد قاسم هیله من
۱۸/۱۰/۱۳۶۵

# د هیلو غوټې

هلته د دنګو پر تمناکو غرونو
لویې ورشو او زرغونې لمن کې
د ګڼو ونو
د تریخ سیوري لاندې
یوه هسکه کېږدۍ
د ازادۍ او خپلواکۍ په وړانګو
لکه د لمر داسې روښانه ښکاري...
یوه سپوږمۍ د کېږدۍ خوا کې ناسته
سترګې (یې) په لوړو څوکو
د لویو غرو لګېږي
ورته ناپایه دښته
د لمر په وړانګو ښکلې
څپه څپه ښکارېږي

او لکه:
تانده غوړکه
د پسرلي په موسم
ورو ورو غوړېږي
او بیا ټوله ګل شي...
داسې د پېغلې په ماشوم زړګي کې
یوه د هیلو غوټۍ
د غوړېدو په خاطر
سر راوباسي له ګرېوانه وایي:
کاشکې ما هم د یو ناپایه دریاب
د قهرجنو څپو
ماتې کښتۍ ته د ساحل په هیله
لار ښوولای!

محمد قاسم هیله من

# ای هېواده!

ای هېـــواده زه پـــر تـــا بانـــدې مـــین یـــم
ســتا پــه مینــه کــې د زړه پــه ســر خــوږمن یــم

ســتا ښــادي زمــا ښــادي ده غــم مــې غــم دی
ســـتا د مینـــې پـــه اور ســـوی لـــوغړن یـــم

لافـــې نـــه وهـــم واقعیـــت درتـــه وایـــم
ستا پـه سـر زه تېـر لـه خپـل سرمال او تـن یـم

لـــه امـــو تـــر ســـمندره زمـــا کـــور یـــې
ســتا د عشــق پــه اور کبــاب پــه ټــول بــدن یــم

ستا لـه مینـې پـه هېڅکلـه منکـر نـه شـم
زړور یـــم داســـې نـــه ده چـــې ډارن یـــم

عقیـــده مـــې ده کاملـــه پـــه دې پـــوه یـــم
چې زه ستا پـه هـر دښمن بانـدې سـوبمن یم

ستا لـه هر ربښتیني دوست سره دوست اوسم
ســتا لــه هــر وحشــي دښــمن ســره دښــمن یــم

پـه یـو لاس کـې مـې قلـم بـل کـې مـې تـوره
ښــه هرچــا وتــه څرګنــد پــرون او نــن یــم

تـه مـې سـاه یـې تـه مـې ژوند تـه مـې وجـود یـې
ســـتا پـــه لار کـــې باعزتـــه او پـــتمن یـــم

لـــه هغـــې لارې چـــې تـــه پـــرې زرغـــونېږې
وابــه نــه وړمــه هــم تــل بــه پــه رفــتن یــم.

لاهور ټکر

# پښتني حيا

اوس چې مې په زړه کې اند پښنې راځي
وايي چې جانان سبا دلې راځي

لاړې به جارو په خپل ښو کړمه
ګوره چې د ورځې که د شپې راځي

بيا به پخوانۍ مينه تازه کړمه
خير که مې حيا د پښتنې راځي

راشه که راځې ته د زړه کور ته مې
کور کې د زړګي مې ولولې راځي

ستا په انتظار کې زه رڼا يمه
اوښکې مې په سترګو کې رڼې راځي.

**شفيقه رڼا**
**۳/۱۰/۱۳۶۵**

# نرګسي لېمه

دا ستا د نظر یاد مې په خیالونو کې راناځي
هوس مې د زړګي په پیوندونو کې راناځي

د هجر توره شپه کې د وصال شمع لګېږي
پتنګ له ډېره شوقه غورځنګونو کې راناځي
حیا د پښتنې ده چې پلو ونیسي مخ ته
رخسار یې د حیا په سروګلونو کې راناځي
د سترګو په نګاه باندې دې زړه زما زخمي کړ
هر زخم د زړګي مې خنجرونو کې راناځي
خزان د بېلتانه مې د خوښۍ پسرلی یووړ
نرګس غوندې لیمه په بارانونو کې راناځي
رڼا شوله ځپه ځپه د مینې سمندر کې
د عشق هره ځپه یې په موجونو کې راناځي.

شفیقه رڼا

# کتل

ستا په یاد کې یاره عالمونه هېرومه
د زړه په درد او غم کې پرهارونه هېرومه

په وخت د سحرګاه باندې شبنم په ګلو پرېوزي
ارمان د وصل را چې خپل دردونه هېرومه
د زړه مرغۍ مې والوته اسمان ته بې وزره
دیدن سره د یار دا پروازونه هېرومه
ته ګل د بیابان شولې و هرې خواته خاندې
د ګل په دې خندا کې ستا غمونه هېرومه
د مینې ګل خزان شو د ظالم بېلتون له لاسه
خزان ته د هر ګل مې خپل اهونه هېرومه

دا ستا کتل مې یاره ټول وجود راته لمبه کړ
رڼا ته د لمبې مې خپل اورونه هېرومه.

شفیقه رڼا

# آه

د اسمان په مخ دا آه دی که زړګی دی پاره شوی
دا شفق دی په اسمان کې په وینو دی لړلی

یا اثر دی پاتې شوی د مظلوم شهید د وینو
یا لمن د کوم خونخوار ده که فریاد دی راوتلی

یا غوغا ده د مظلومو د اسمان سترګې سرې شوې
یا نګارې مخ سور کړی که عاشق یې دی وژلی

یا د پېغلې پښتنې مخ له حیا خخه سور شوی
یا یې سور سالو په سر دی که پلو یې دی نیولی

د اسمان لمنه سره ده که شین شوی لاله ګل دی
یا یې ټیک پر تندي ایښی که مین په زړه داغلی.

شفیقه رڼا

# ازمون

عقل مې د عشق په تکل اور کې په لمبو رغږي
مينه مې خوږلن کې په انګار او په ايرو رغږي

نن راته په سترګو کې لمبه د قهر تاوه کړه
هيله مې له دې هم د سکروټو په سرو رغږي
ځومره د اميد په مينه نازي مې ګوګل کې زړه
عشق باندې په مالګو کې په خپلو پرهرو رغږي
چا د اور په سترګو کې ليدلې د اوبو مينه؟
عقل بې احساس دی په لمن کې د پردو رغږي
بيا نازکو نرمو له ازمون نه پښې وکښلې
موږه متکورو سره چېرته په اغزو رغږي

ښکل به مې اميد کړي د سره حسن اننګي په عشق
ځکه چې نن وخت ورته په پښو کې په توبو رغږي.

اسمعيل

# د ماضي خندا

د آه په تاو عشق لېوني وخندل
شونډو د ګل کې چې اغزي وخندل

عقل به وناخي احساس ته خجل
حسن د غم کې که ښادي وخندل

دود شو تکل د اسوېلیو په اور
ورته پرهر زړه ارماني وخندل

د ګل خندا يې په لمبو ونیوه
سیلۍ په مینه د سپرلي وخندل

نور د سبا د حسن شونډې مښي
په توند شمال باندې ماضي وخندل.

اسمعیل
۲۰/۲/۱۳۲۲

# د اوښکو جنازې

پر سوي مخ مې دي رواني سلسلې د اوښکو
راته خندېږه او کوه مې تماشې د اوښکو

چا مې پر شونډو د خندا د شپې ځل ونه لید
عشقه ګرم نه يمه راغلې مرحلې د اوښکو

د کوم احساس له خولې نه وځي د زګېرويو کتار
چې د شعر سترګو نه مې خوشې دي ويالې د اوښکو

څومره د مکر تخیل ته کښته شوی نرم؟
په نوم د میو راته مخ کې ږدي پیالې د اوښکو

دا به تصویر د چا د ویر وي انځور کړی قلم
ځکه یې نوکې نه تویېږي ترانې د اوښکو

څنګه به ګاټې متکور نه شي د سترګو زما
چې شپه او ورځ ترېنه تاوېږي سرې لمبې د اوښکو

شي به کړې د یار مغرورې سترګې عقله که نه؟
چې ورته یوسم ستړې شوې اند ېښنې د اوښکو

ستا د لذت ناظر دې سېزي د عشق هیله زما
اخر به وړم د خندا کټ کې جنازې د اوښکو.

اسمعیل
۲/۲/۱۳۶۲

# متهکور

زه د ارمان لپاره
لکه د جوارو دانه
د اور بټۍ کې
د ازمون په ګوتو
په مينه مينه
په اور واوښتم راواوښتلم
خو د لمبو له تاوه
سپينه پولۍ نه شولم
او د خوړې مينې د عشق له زوره
د اور لمبو کې
متهکور پاتې شوم.

اسمعيل
۲۷/۱۲/۱۳۶۵

# د محمد اسمعیل یون لنډه پېژندنه



محمد اسمعیل یون د حاجي محمدخان زوی پر ۱۳۴۲ل کال، د لغمان ولایت د الینګار ولسوالۍ دنیازیو په یوې روښنفکرې کورنۍ کې زېږېدلی دی.

لومړنۍ زده کړې یې د الینګار ولسوالۍ د سلینګار په لومړني ښوونځي کې سرته رسولي دي، تر هغه وروسته کابل ته راغی او په خوشال خان لېسه کې شامل شو. پر ۱۳۲۲ل کال له نوموړې لېسې څخه په دویم نومره بریالی او پر ۱۳۲۷ل کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې محصل شو. پر ۱۳۷۰ل کال له نوموړې څانګې څخه اول نومره بریالی او پر همدې کال بېرته دپښتو څانګې د کدر غړی شو. پر ۱۳۸۵ل کال په نوموړې څانګه کې د ماسټرۍ دوره پیل شوه، یون په ډېر ښه او بریالي ډول دا دوره پای ته ورسوله.

محمد اسمعیل یون له ۱۳۷۰ ل کال څخه بیا تر ننه پورې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي تدریسي غړی او د «پوهندوی» علمي پوړۍ ته رسېدلی دی، پر استادۍ سربېره، استاد یون د «کابل پوهنتون»، «هیلې» او «شمشاد» مجلو د چلوونکي دنده هم په ښه ډول ترسره کړې ده. په پېښور کې د چاپېدونکې «معارف» مجلې کتونکی غړی هم و. همدارنګه دیو شمېر نورو چاپي خپرونو همکار هم پاتې شوی دی.

استاد یون پر ۱۳۸۱ ل کال، په جلال اباد کې بېړنۍ لویې جرګې ته د ختیزو ولایتونو د انتخاباتو د دفتر مشر شو، ددې جرګې لپاره تر ټاکنو وروسته د جرګې غړی، بیاد جرګې د غړو له خوا د بېړنۍ لویې جرګې دلومړي منشي په توګه انتخاب شو. استاد یون په دې جرګه کې تر خپل وروستي وسه خپل ملي او تاریخي مسولیت ادا کړ او د هېواد دښمنه عناصرو د توطیو مخه یې ونیوله.

تر دې جرګې وروسته، کله چې د افغانستان د اساسي قانون د تدوین بهیر پیل شو، نو استاد یون بیا ددې بهیر لپاره د ختیزو ولایتونو د دارالانشاد دفتر مشر وټاکل شو. په ختیزو ولایتونو کې د اساسي قانون د لویې جرګې لپاره انتخابات هم د همدې دفتر له خوا ترسره شول. استاد یون د اساسي قانون د تصویب په لویه جرګه کې د نوموړې جرګې د دارالانشا د غړي په توګه خپل فعال رول ادا کړ. ټاکل شوې وه، استاد یون په ختیزو ولایتونو کې د افغانستان

د جمهوري رياست لپاره د عمومي ټاکنو د دفتر مسول شي، خو په کابل کې د لويو جنګسالارانو او ځينو تنظيمي مشرانو له خوا پر حکومت او ملګرو ملتونو د زيات فشار له امله له کاره ګوښه شو. ملګرو ملتونو(UNAMA) استاد يون ته وړانديز وکړ، چې په کابل کې به تر دې لوړه دنده دروسپارو، خو استاد يون ونه منله او خپلې استادۍ ته يې دوام ورکړ.

درې کاله وروسته يې د ځينو ملګرو په زيات ټينګار او غوښتنه، د جمهوري رياست د ملي امنيت شورا په دفتر کې د فرهنګي چارو د رياست دنده ومنله او په کابل پوهنتون کې پر استادۍ سربېره لا تر اوسه دا دنده پر مخ وړي. استاد يون پر **۱۳۸۵**ل کال د افغانستان او پاکستان د امن ګډې جرګې لپاره د افغانستان له خوا د منشي په توګه غوره شو او دا دنده يې هم په ښه ډول ترسره کړه.

استاد يون د خپلواک ليکوال په توګه په تېرو شلو کلونو کې ګڼ شمېر فرهنګي او ټولنيز خدمتونه ترسره کړي، په ګڼو چاپي، راديويي او ټلويزيوني مرکو کې يې د و اقعيتونو او حقايقو د څرګندېيان له امله د خلکو په زړونو کې ځای نيولی دی. که څه هم ډېر خلک د يون ليکنې، مرکې او نظريات خوښوي، خو يو شمېر داسې خلک هم شته، چې د يون سرسختي مخالفين دي. د هغه ملي او ګټورو نظرياتو ته هم غلط رنګ او تعبير ورکوي، دا ډول

اشخاص، چې اکثره یې زورواکي او د سیاسي ډلو ټپلو غړي او مشران دي، د استاد یون نظریات خپلو شخصي او تنظیمي ګټو ته خطر بولي، نو ځکه یې په ټینګه مخالفت کوي. زه ددې شاهد یم، هر کله چې یون کومه لیکنه او مرکه کړې، نو دده پر وړاندې یې مثبت او منفي غبرګونونه دواړه راپارولي دي، منفي غبرګونونه اکثره وخت د هغو اشخاصو او ډلو له خوا وي، چې په تېر کړکېچن سیاسي بهیر کې یې ډېرې نامشروع ګټې ترلاسه کړي او ځانونه یې مطرح کړي دي.

مثبت غبرګونونه اکثره د ولس دمشرانو، روښنفکرانو او نورو مخورو له خوا وي، خو استاد یون په دغسې سختو اغزنو او تنګو شرایطو کې بیا هم خپل فرهنګي، سیاسي او ټولنیز کار ته دوام ورکوي.

دا اوسنی فرهنګي کار، چې تاسو یې اوس په مسلسل ډول ګورئ، دا د تېرو شلو کلونو کارونه دي، چې له تېر یو نیم کال راهیسې پرې په منظم ډول کار شوی، اوډل شوي او دادی ستاسو مخې ته اینښودل کېږي، په داسې یو دولتي دفتر کې چې بوختیاوې په کې ډېرې وي، د منظم او ستر فرهنګي کار سرته رسول اسانه کار نه دی.استاد یون پر خپلو فرهنګي کارونو سربېره د ګڼو فرهنګي ټولنو د غړي، همکار او موسس غړي په توګه هم خپل فرهنګي رول ادا کړی،په پېښور کې یې د دوو المان مېشتو فرهنګي ټولنو

«دافغانستان دکلتوري ودې ټولنې» او«د پښتني فرهنګ د ودې پراختیا ټولنې» د همکار په توګه د بېلابېلو لیکوالو په لسګونو اثار، ایډیټ او چاپ کړي دي. دغه راز یې په سلګونو کورنیو مشاعرو، ادبي غونډو او سیمینارونو کې ونډه اخیستې ده، خپله یې هم په لسګونو مشاعرې،سیمینارونه او علمي ورکشاپونه جوړ کړي دي.

سربېره پر دې، په یو زیات شمېر، ملي او نړیوالو کنفرانسونو کې یې په ښه ډول د خپل هېواد استازي کړې ده. دلته به یې د اثارو یادونه وکړو:

## اثار

### الف- پنځونې

| کتاب نوم | خرنګوالی | چاپکال |
| --- | --- | --- |
| • متکور | لومړۍ شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • په اورونو کې سندرې | دویمه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |

### ب- راټولونې

| | | |
| --- | --- | --- |
| • هیلې | ګډه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • نیمګړي ارمانونه | د حیران شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د لوونو فصل | ګډه شعري ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د نازو انا یاد | د سیمینار د لیکنو ټولګه | دویم ۱۳۸۷ |
| • د استاد الفت نثري کلیات | داستاد الفت نثرونه | درېیم ۱۳۸۷ |
| • سیندونه هم مري | د اسحق ننګیال شعري منتخبات | دویم ۱۳۸۷ |

## ج- ژباړنې

- د ټولنپوهنې له نظره: په افغانستان کې د واک جوړښتونه
  دپوهنوال روستارتره کي اثر دويم ۱۳۸۷
- .د افغانستان فرهنګي ميراثونو ته يوه کتنه
  د نينسي دوپرې اثر دويم ۱۳۸۷
- په افغانستان کې د جګړې جنايتکارانو محاکمه
  د پوهنوال روستار تره کی اثر دويم ۱۳۸۷

## د- يونليکنې

- د اماراتو سفر د اماراتو يونليک دويم ۱۳۸۷
- که يون دی يون دی د اروپا يونليک لومړی ۱۳۸۷
- دپښتنګون ترڅنډو د امريکا يونليک لومړی ۱۳۸۷

## هـ- څېړنې او شننې

- د محمدګل خان مومند اند و ژوند ته يوه لنډه کتنه دويم ۱۳۸۷
- استاد زيار د پښتني فرهنګ يو ځلاند ستوری دويم ۱۳۸۷
- دکابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځي پښتو کتابښود دويم ۱۳۸۷
- د افغانستان فرهنګ ته اوښتي زيانونه دويم ۱۳۸۷
- د پښتو شعر هندسي جوړښت شپږم ۱۳۸۷
- له افغانستانه د مسلکي کادرونو د فرار عوامل دويم ۱۳۸۷
- ساينسي پرمختياوې دويم ۱۳۸۷
- بېړنۍ لويه جرګه ولسواکي او زورواکي دويم ۱۳۸۷
- انديال خوشال لومړی ۱۳۸۷
- هيله د خپلو سريزو په لمن کې لومړی ۱۳۸۷
- کلتوري يون لومړی ۱۳۸۷
- فرهنګي فقر لومړی ۱۳۸۷

- مرکه او مرکې — لومړی ۱۳۸۷
- خوشال په خپل ایډیال — لومړی ۱۳۸۷
- د کتابونو په وړمو کې — لومړی ۱۳۸۷
- افغانستان په سیاسي کړلیچ کې — لومړی ۱۳۸۷
- پښتو لیکنی سمون — لومړی ۱۳۸۷
- اوسنۍ رسنۍ — لومړی ۱۳۸۷
- که نړیوال ماته وخوري؟ — لومړی ۱۳۸۷

خدای (ج) دې استاد یون ته ډېر عمر ورکړي او جرئت دې ورته هم تاند لري، الله(ج) دې دی له هر ډول بدو بلاوو وژغوري، په فرهنګي کارو زیار کې ورته د نور زغم او اوسپلې هیله لرم.

په درناوي

وفاالرحمن وفا

کابل- افغانستان

# HiLe

## (Hoops)

The collection of young poets poems

Collected
By:
M. Ismael yoon




د خپرونو لړ: (۱)